# خوږې مسری

## کبير ستوری

خپروونکی: د پښتونخوا د پوهنې ديره - پېښور

# دکتاب پیژندنه


| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | خوړې مسرۍ |
| ویناوال | ډاکتر کبیر ستوری |
| خپرندوی | د پښتونخوا د پوهنې دېره پېښور |
| د خپرونو لړ | (   ) |
| چاپ نېټه | ۱۳۸۴ / ۲۰۰۶ ع |
| چاپ شمیر | ۲۰۰۰ ټوکه |
| کمپوزر | نسیم خان ستوری |
| ډېزاین | شفق |
| چاپ ځای | د دانش خپرندویې ټولنه تخنیکي څانګه |

د انټرنیټ په مخ

کمپوز : نسیم خان ستوری

ترتیب : ایمل خان ستوری

# ډالـــۍ



خپل دروند مشر حاجی غلام احمد بلور ته ئې
ډالۍ کوم، چې د پښتون قام د پاره ئې نه ستړي
کیدونکي خدمتونه کړي او کوي

**ډاکتر کبیر ستوری**

**Dr. Kabir Stori**
Kiebitzweg 12
50389 Wesseling
Germany (Deutschland)
**www.kabirstori.com**
**E-Mail: stori@kabirstori.com**

# سرليکـــونه

# د ډاکټر کبیر ستوري شعري رنګ

د شاعرۍ په حقله د هر چا خپل یو نظر دی او دا موضوع که هر څو ډېروعالمانو د ډېر علم و حکمت په خبرو ډېره رڼه کړې هم ده، ولې ددې باوجود دا بیا هم په هر وخت کې د بحث وړ موضوع وي. لکه څنګه چې یو تخلیقي عمل یوه نه ختمېدونکې لار ده، دغسې ورسره دا موضوع هم نوی نوی وضاحت غواړي. زما عرض دا دی، چې شاعري یوه فني لوبه ده، کله چې یوه عامه خبره، یا یوه مشاهده سړی په خبرو کې بیا نوي، نو هم که په خبرو کې څه نه څه ترتیب یا د ژبې د صحیح استعمال توان وي، نو دغه خپله منشا په لطیفه پیرایه کې بیا نېدی شي. ولې د خبرو په حالت کې که سړی مقصد هم بیان کړي او دغه د بیان یا حسن بیان لطافتونه پکې نه هم وي، نو سړی دغه سړی نه شي ګرمولی ولې چې کله خبره فن ته راځي، نو بیا سړی د فنپارې د لواظماتونه آزادنه وي او چې څه هم بیا نوي، نو چې دغه بیان په یو داسې فني وجود کې نغښتی وي، چې د لفظونو د ترتیب او د فنپارې د وجود جوړښت یو داسې حسن ولري، چې موږ د مانا نه هم بې نیازه کړي او د خپل وجود تماشې ته مو تماشه کړي. مثلاً ګل ښکلی دی او چې ښکلی دی، نو زموږ نظر ځان ته رااړوي او چې زمونږ نظر ځان ته راواړوي، نو مونږ د هغه د رنګونو شمېر او ترتیب ته متوجه شو. د ډېرې توجه باو جود مونږ د ګل مانا ته نه رسو او چې مونږ د ګل مانا ته ونه رسو، نو بیا باید چې دا سوال مو په ذهن کې پیدا شي، چې دغه ګل بې مانا دی که موږ دا تسلیم هم کړو چې او دغه ګل بې مانا دی، ولی بیا هم چې دغه ګل زموږ توجه راګرځوي، نو که زه خطا کېږم نه دا په دې چې دده په جوړښت رنګونه هم دي په دې کې یو ترتیب هم دی او بیا دغو رنګونو او ترتیب ته یوه فني خوبي هم ورکړی شوې ده.

هم دغه فني رغونه ده، چې یو بې مانا څیز ته ئې یوه داسې معنوي ښکلا ببښلې ده، چې موږ ئې په معنو پسې ګرځو. مانا ئې هم نه مومو، خو ذهني پرېکړه هم ورسره نه شو کولی. هم دغه خیال زما هر کله د یوې فنپارې د پاره هم وي. مونږ چې د کوم فکر او کومو جذبو اظهار هم کوو، نو باید چې په خبرو کې ئې وکړو ولی چې دغه اظهار فن ته راواړو، نو چې د فن تقاضې هم وپیژنو او پوره ئې هم کړو.

په اصل کې زما مخې ته دا وخت د ډاکتر کبیر ستوری کتاب پروت دی. نوم ئې دی خوږې مسرې. هسې په دغسې تریخ وخت او تریخ ماحول کې دا څومره ښه او خوږه خبره ده او څومره خوږ خیال دی، چې شاعر خلکو ته د مسرو خواږه وبښي.

د ډېر وخت د پیژنګلوۍ باوجود، زه د ډاکتر صیب سره په ډېرو محفلونو او مجلسونو کې نه یم پاتې شوی.

ولی د هغه د نثر څه کتابونه او د شعرونو څه مجموعې مې ویلي دي، ځکه چې دغه کتابونه رابانديې هغه وخت په وخت راپېرزو کړي دي. زما په خیال ډاکتر صاحب د ساه پوهنې د یو ما هر استاد سره سره یو ښه نثرنګار هم دی ، ځکه چې په دغه نثرونو کې هغه د نثر پارې غوندې خوبۍ پیدا کړي دی. زه د یو وخت نه دده شعرونه ګورم. دده خیال غني دی، ځکه چې مطالعه ئې ښه ډیره ده او د هرې موضع لپاره نغد علم هم لري، نو که څوک ئې هم د شعر او نثر تقابلي جایزه اخلي، نو کېدی شي چې د شعر په مقابله کې ئې خلک ښه نثر لیکونکی وګڼي او دا شاید چې د هغه حق هم دی. پاتې شوه شاعري، نو هغه هم د خپل نثر د کتابونو په مقابل کې ورسره څنګ په څنګ روان دی او تر دې وخته ئې څو کتابونه په پښتنو پېرزو کړي دي او شعر ئې هم داسې خواږه لري، چې سړی ورسره خپلې خبرې هم شریکولی شي او د هغه د جذبو په آهنګ هم پوهېدی شي. داسې ښکاري چې ډاکتر کبیر ستوری یو متحرک او فعال سړی دی، چرته چې اوس هغه ځایونه، هغه ملکونه به ډیر ښکلي وی ولی هغه ددې وطن غانتېول، زیړ ګلی او پسرلی خوښوي، ځکه چې دا د هغه د پلار نیکه وطن دی او هم دلته ئې سترګې سپړ دي دي او هم دلته ئې خړپوسې کړي دي.

ستا ښکلی حجرې کې چې مې شپه وکړه
ویخ شومه بیدار شومه ژوندون شومه

ګوره کنه د بېدارۍ د پاره او ژوندون د پاره هغه حجره په استعمال کې راوستې ده، خو په شعر کې چې کله هغه ستا ټکی استعمالوی، نو دغه مونږ په دې هم پوهوي، چې د حجرې ژوند هم د مکین د ژوند په بنیاد دی.

ستا د کلا ګوټ پورې نن در غلم
ته چې مې ونه لیدې راستون شومه

هم د غسې د هغه په دې کتاب کې به هم ډیر شعرونه وي، چې زمونږ د ژوند د پېښو او تجربو ترجماني کوي او هم دغه مېړنتوب دی چې سړی د خپل زړه سره سره د نورو زړونو ته هم رسائی پیدا کړي

په مینه

رحمت شاه شایل ۲۲ /۲/ ۲۰۰۶

# د ستورو کتې

چې د ریبار سره جرګه شوه ته خبر وی که نه ؟
اخر کی ځنګه فیصله شوه ته خبر وی که نه ؟

په منډه راغله د پترو شورئی مین خبراوه
یو ځو شیبی دلته دمه شوه ته خبر وی که نه ؟

په ناز روانه شوه په لوری د جانان د کلی
له نیمی لاری راستنه شوه ته خبر وی که نه ؟

هر څوک پوهیږی چې ریباره بی جانانه نه ده
چې ور روانه نیمه شپه شوه ته خبر وی که نه ؟

د پښتو زورئی د اسمان لمن ته جګه کړله
د ستورو کتې کی چې وده شوه ته خبر وی که نه ؟

# پښخی خبری

ستا په تورو ښکلو سترګو می سوګند دی
چې بی تا خراب و یجاړه ځما ژوند دی

د نیا ټوله راسره شي چې لاس راکی
ستا په مینه ملاتړ کی ځومره خوند دی

ستا د حسن د انګړ نه می خیال نه ځی
چې په تار د تورو زلفو کی دی بند دی

که د زړه نه می پوښتی حال په جار وائی
ستا د مینی دا ستان پټ ندی څرګند دی

ستوري ستا پښخی خبري دې ستا یلې
پروت په هر یوه خبره کی دی پند دی

## شریک کور

زمونږ ملک د ګڼ قامونو شریک کور دی
پدی ملک کی هر یو قام د بل قام ورور دی

د خپل شمیر په کچ حق هر قام ته پکار دی
هسی نه چې د یو تش د بل ډک شکور دی

## سپاربنت

سوچ او اند مورنۍ ژبه کښې اسان دی
په پردی ژبه کی سوچ انسان ته ګران دی

د ماشوم په مورنۍ ژبه روزنه
سپاربنت ستوریه د هر یو سا پوهان دی

# منتظره

هم بګکتې او هم ټپه او هم بدله یمه
د نوی ژوند د نوي فن نوی سندره یمه

له ما نه ستر نه کوي زه هر کا له ته ورځم
د هر مین د زړه د رازه نه خبره یمه

زه په پَرُدی رباب کی نه راځم پرَدی ئی شلېږی
د خپل رباب ، خپلی شپیلۍ غږ سره مله یمه

زه نه زړیږمه په هر وخت کښی به ځوانه یمه
چې د پوهنی د ډګر پخه خبره یمه

زه ستوري خپلو پلوشو کښی هسک (۱) ته جګه کړمه
له پاسه ګورم ستا پښتو ته منتظره یمه

---

۱ ) اسمان

## ښه نوم

د انسان ژوند یو څو ورځې وي تېرېږي
ښه ده ، ښه ده چې په ښه نوم څوک یادېږي

مړه هغه دي چې ئې نوم او اثر نه وي
چې ئې نوم اثر ژوندی وي نه مړ کېږي

محمد دین مقید ښه نوم دی ګټلی
ادیبان چې ئې د یره کې راټولېږي

دی په برخه د غریب با ندې ټینګار کړي
که هر څو د نیا بد له شوه بد لېږي

ننګ په پت ، ښېګڼه توره او وفا کړي
د ادب د اسمان ستوری دی ځلېږي

---

په ۲۰۰۵ عسیوی کال کښې په پېښور کښې د پښتو عالمی ادبی کنویشن په چوکاټ کښې د محمدین مقید په یاد په تل کښې د مشاعری دپاره

# لوړ تهذیب

چې لوی شوي دي په جګو جګو غرو کی
غیرتونه شته سینو د پښتنو کی

په قامونو د دنیا کی میلمه پال دي
ټنګ ټکور ئی هره شپه شته دي حجرو کی

د هنر سره د مینی دا ثبوت دي
شاعرانو دي ستا یلي په مسرو کی

د ښمنان ئی په وژو بریالی نه شول
څومره زور شته دي په ژبی د پښتو کی

دا یوازی ژبه نده لوړ تهذیب دي
لویه ده له نورو ژبو په غرو کی

د پښتو د اسمان ستوری دي روښان وي
چې ځلیږی تل د غرونو په سرو کی

---

وژو: وژل

# پښتو ژبه

چې هم تهذیب دی هم خوږه د ګړید و ژبه ده
ملګرو غوږ شی دا زمونږ خپله پښتو ژبه ده

د فن ښکلا ده د هنر په ګلدرو کی اوسیږ
د روح غذا ده د سندرو او نغمو ژبه ده

ختیه ئی خدای د پت، ښیګڼی او وفا جوړه کړه
د پښتونخوا د د ننګو غرونو سرد رو ژبه ده

ښه ئی کړه یا ده چې بیا سوچ هم په پښتو کی کوی
د ژوند ګلبڼ کی د ژوند ون د ترانو ژبه ده

منګی رباب سره چې مل شی نو حجری تود وي
په خاص کونږ کی دا د ستوری د مسرو ژبه ده

# د مـــیني امـــتحـــان

د مـیـــنی امــتحـان دی ورکـــولــی شـــی کـه نـه
خـپل سر پـه مـحـبت کی داو کـولـــی شـــی کـه نـه

بـیـگا تـا خوب کی بوتـلمه جا نا نه خپل کـا لـه تـه
پـه ویــښه مـی تـه هـم کـور تـه بـیـولـی شی کــه نه

لـــوزونـــه د وفـــا او مـحـــبت خـــودی ډ یـر کـــړی
اوس وخـت دی ، عـملی گـام ایـښود لـی شـی کـه نه

غـونچی غـونـچی کمخی چې دی په شا با ندی ځنگـیږی
تـالـونـه د کـمخـونـه جـوړولـــی شـی کــــه نــــه

دا ســــتوری دی تعظیم تـه راکوز شـوی لـه اسما نه
ســتـا قــد ر درنــا وی پـــوره کـولــی شــی کـــه نـه

# په ایــــمان مـــین

دا فـــلسـفـي وائـی مـلګـرو هـــر انــسان مـــین دی
څـوک پـه پـیسو باندی مـین څوک په جانان مین دی

څـوک ددی ښــکلـو مـحبت کی سـرګــردانـه ګـرزي
څـوک خود پـرسـته دی یـوازی پـخپل ځـان مـین دی

چـــا د جـــنـت پــــه تـــمه تـــمه مـــسلـی زړی کـــړی
څوک په د نـیا کی مـزی غـواړی پـه جـهـان مـین دی

څـــوک د اوبـــو پـه شـان د هر یو لـــوښـی بـڼه نیسی
څـــوک لـکـه تـیږه پـه ازاد ســوچ او بـیان مـین دی

د هر چا خپل کار دی چې مینی ته څنګ رنګ ورکوي
ســـتوری په قـام، وطـن، پـښتو او په ایـمان مـین دی

## د مینې مضمون

ګل مې بویولو چې ګلګون شومه
مینه مې کوله چې مجنون شومه

زړه چې مې دا ستا په مینه بند شولو
پوه هله د مینې په مضمون شومه

ستا ښکلې حجرې کې چې مې شپه وکړه
ویښ شومه ، بیدار شومه ژوندون شومه

ستا د کلا ګوډ پوری نن درغلم
ته چې مې ونه لیدې راستون شومه

ستوری د پښتو چې مې ملګری شو
نر شوم میړنی شومه پښتون شومه

## دوعا

خیال محمد د پښتو فن د خیال شمله ده
خدایه تل دغه شمله لری اوچته

انور خیال د پښتو فن ډول سینګار دی
خدایه دا ډول سینګار مه کړی بی پته

خدایه دا د پښتو فن لوړ تر اسمان کړی
خیال محمد او انور خیال ئی مخکښان کړی

## د ستور

دا د ستور دی چې لومړی پیژند د ځان شي
پس له هغی بیا پیژند د نور جهان شي

چې پخپله پښتو ژبه لیکل نکړی
دالیکوال دی د نالوستي نه قربان شي

# د مینی قانون

زمونږ د کلی په کوځو کی لوبید لی ده
د ښکلاګانو ملکه خلکو ته کلی ده

ښکلی ده ، ښکلی ده ، ښا یسته ده
هم راشه د رشه ئی د رنه ده
خوی او خاصیت کی پښتنه ده
د پښتونوالی په د ستورئي پوهولی ده
د ښکلاګانو ملکه خلکو ته کلی ده

د اخلاص جوړه ئي خندا ده
د وفا توکی ده وفا ده
د نازه ډکه ئی ادا ده
نازئی په سر سترګو منمه نازولی ده
د ښکلاګانو ملکه خلکو ته کلی ده

چي محبت د چا پښتون شی
ستوری روښان ئی د ژوند ون شی
پوه بیا د مینی په قانون شی
د عشق ډګر کی همیشه پښتو ګټلی ده
د ښکلاګانو ملکه خلکو ته کلی ده

## د پښتون سرېتوب

پښتون وياړي په پښتو ، پښتو ګړېږي
پښتون نه دی په پښتو چې نه پوهېږي

پښتو ، پت ، ښېګڼه ، توره او وفا ده
چې ورزيات کړي ننګ پښتون ترينه جوړېږي

دا خويونه د پښتون د سرېتوب دي
بې پښتو چې شي پښتون کله يا د يږي

ستوری وائي ما ده ښه ډ يره خېړلې
تش په وينه با نه دی څوک نه پښتون کېږي

## د پښتو ضرورت

سياسي واکمن که پښتانه شي، پښتو کاندی د سرکار ژبه
هم د ښوونځي ، هم د دفتر، هم د خپل کار ژبه

بيا به پوهان او اميان حس کړی ضرورت د پښتو
پښتو به شي بيا د پوهني ، تجارت او د روزګار ژبه

# فیصله

په لاره د پښتو چې یم روان نه ستړی کیږم
منزل که هر څو لیری دی اخر به ورسیږم

ځما دا فیصله ، دامی سوگند او دا پیمان دی
د پت ښیگنې توری او وفا نه، نه بیلیږم

د ژوند په کړاوونو کی پوخ شوی یم استا د یم
که سل ځله رالویږم بیا پا څیږم روانیږم

که وخت راسره ځی خوښه ئی خپله نو راځی دی
ما ډ یر انتظار وکړ کله نور ورته ودریږم

د سوچ او د بیان د ازادۍ ملا تړ تل کړم
پدی با ندی زه ستوری افتخار کوم نازیږم

# تکړه قلم

مطلب پروت دی د لفظونو په مانا کی
دا نسان د پوهاوی هره وینا کی

په تکړه [۱] قلم لیکنه کړه لیکواله
چې لیکنه دی تل پاتی شی د نیا کی

چې د خپل غیرت تاریخ پکی خوندی کړی
پاتی رانه شی په ننګ او په وفا کی

د تکړه قلم لیکنه نه ورانیږی
که ئی ومینځی هر څو ئی ښه صفا کی

د تکړه قلم رنګ پوخ وی نه خریږی
ستوری ویل پوخ وی د ژوند په پرمختیا کی

---

(۱) ځما د لمسۍ سلما په کمیس یو انځور اونوم لیکل شوی و پوزه ئی ماته شوه او دوینو څو څاڅکی په کمیس ولویده. ما وویل چې دا کمیس په داسی ډول ووینځی چې وینه ئی لاړه شی دا لیک وران نه شی. ځما کوچنی لمسی پوهیال وویل چې دا لیک په تکړه قلم لیکل شوی دی، نه ورانیږی. ما هم د تکړه قلم لفظ راوخیست.

# رنګین ګلی

تخنیکی وده پرمخ ځی نه تمیږي
دا نړۍ په یو رنګین ګلی بدلیږي

کمپیوټر به وسیله شي د هر کار
کار به بی له کمپیوټره هیڅ نه کیږي

انټرنت به وي د یره د معلوماتو
دی دیره کی به هر څه نه خلک خبریږي

انټرنت به هم ازاده لوی بازار وي
د بازار راج به په هر ځای کی چلیږي

د قلم د ازادئ امکان ئی مل دی
د جانان کوڅی ته لاره هم لنده یږي

بی ریباره به شي مینه په دنیا کی
د مینو به سید ه خبری کیږي

قا مي پولي او سیا سي پولی به یو شي
یو له بله به بیا هده و نه بیلیږي

ستوری دا اوس نړۍ واله ترانه ده
چې د ځمکی تنابونه رالنده یږي

## د غـــیرت شـــمله

نـاســـت نـــدی تـل په حـــرکت او یـون کی بـرخه لری
د مـحـــبت او وروروﻟـــﯽ تـــړون کـــی بـــرخـــه لـــری

پـــه پـوهـنـیـز ډ ګـرکی هـم د چـانـــه پـا تـــې نـــدی
پـــه کلـتوری او سـیا سـی ژونـــدون کی بـــرخـــه لـــری

د نـغری په شـان پـــه دری پـــښـو مـحـــکـــم ولاړ دی
د کــور د چارو په پـخـلـی سـمــون کـی بـرخه لری

له رب رضا دی، چـه پـښتـــون ئی پـــیدا کــړی دی
دمـیـړنـی اولـس په خـوی ګـلـګـون کی بـرخه لـری

د نـنـــګ غـیرت شـمله ئی ســـتورو د اسـمان ته رسی
د نـوی ژونـــد د پـرمـــختـــګ قـانون کی برخه لـری

# لوبی

موسم د پسرلی دی عاشقان لوبی کوي
د ګلو په ښاخونو بوراګان لوبی کوي

ښکلائی شی زر چنده دا د مینی کرامت دی
خندا چې په سرو شونډو د جانان لوبی کوي

خپل سر د معشوقو په سر هر څوک شیند لی نه شي
خپل سر سره د عشق سربازان لوبی کوي

پروا د سود او زیان نکړي د مینی لیوني
په تمه د جانان په بیا بیان لوبی کوي

همځولو راته یاد شولو تیر وخت د ماشومتوب
کوڅو کی چې د کلي ماشومان لوبی کوي

سپوږمی د پنځلسمی سره ستوري بد رګه دي
د شپی چې په رڼا کی میینان لوبی کوي

# د پښتو سندرې

زار دې شم قلمه د پښتو سندرې لیکه
بیا د پښتونخوا د سرو سندرې لیکه

زه خپله ټپه پخپل رباب کې غږول غواړم
ساز په یکه زار او یـه قربـان شروع کـول غـواړم
زه قـا مې وحـد ت پـه زور د مـینې جـوړول غـواړم
مـا تـه د خپل قـا م د ننگیالـو سندرې لیکه
زار دې شم قلمه د پښتو سندرې لیکه

زه د ژوندون ناوې خپل کاله ته راوستل غواړم
زه ویده شعور د پښتونوالي ویښول غواړم
زه پښتو لیکل ، پښتو ویل، پښتو لوستل غواړم
ماته د خپل کلي د حجرو سندرې لیکه
زار دې شم قلمه د پښتو سندرې لیکه

زه تا نه قلمه تیره توره جوړول غواړم
تا ته د خوشحال نیکه پټکې په سرول غواړم
لاره مې پښتو ده د پښتو په لاره تلل غواړم
ستورې ته د ژوند د پسرلو سندرې لیکه
زار دې شم قلمه د پښتو سندرې لیکه

# مـــهربـــان زړه

زړه خـو هــغـه زړه وی چې پـه مـینه کی سـلطان وي
څـه پـه هـغه زړه چـې د زیـا تـــي پـــه لار روان وی

مــه کـوه زیـاتــی، زیـا تی د ژونـــد جـرړی وبا سي
زیـا تـی کار د شـیطان دی زیـاتـی زړه کی د شیطان وي

لـوړ مقام که غـواړی زړه ته ځواک د محبت ورکــړه
زړه خـو د لــویـا نــو تــل پــتــمن او مـهـربـان وي

زړه دی د جانان زړه سره وتــړه چـې غــبرګ ګــرزي
سـتا بـه داسـی حال وي څه چې حا ل دی د جانــان وي

سـتوریه دود د سـتور د محبـت لـه زړه بــهر نـکــړی
دا د سـتور چې پـالـی هـمیــشه بـه دی زړه ځـوان وي

# ځوانی

ځوانی ښه وخت دی په ژوند کی د انسان
هم ئی ښځی خوښوی هم ئی نران

پد ی کلی کی زمونږ یوه بوډۍ وه
دزړه حال ئی راته دا رنګ کړ بیان

بوډۍ ویل چې می ځوانی زور د ښا یست و
بی تنخوا می شازلیمان و نوکران

اوس چې عمر وخوړم، ځوانی می لاړه
رانه تښتی کنډ والو کی بلاګان

ښا یست نه شته توان نلرم د مینی
خوله کنډ اسه ، ملا می کړوپه، سپن ویښتان

ما ل دولت او پوهه څه کړم چې لرم ئی
اخستی پری ښا یست نه شم په جهان

د ځوانی په قد ر پوه شوم چې شوه تیره
د ځوانی د وخت ډ یر زیا ت کوم ارمان

منم دا خیال له ارمانه پیدا شوی
چې جنت کی به هر تن وی عمری ځوان

بس دا تمه کوم ستوری اخرت کی
چې دوبار می ځوانی مل شی د خپل ځان

## کالبوت

چې د وطن مینه ئی زړه کی نه وي
هسی کالبوت دی په هیڅ څه کی نه وي

په کالبوت سر دی ستوریه مه خوره وه
د ژوندی ژوند جذ به په مړه کی نه وي

## مړکتی (۱)

د تنکی بازار جوړ شوی تنګان ګرزی تیرا یسته کړي
مړ کتی د بوسو جوړ کړي مېښنه تیرباسی شده کړي

تسبیح وا چوی پغاړه غته ربیره اوږده پریږدي
د پیسو د پاره منډی ، خدای د پاره ځان اوده کړي

(۱) بخوړی

## ګلرنګه

چا ته به ښکلی چا ته خڼګه ښکاري
ما ته ښا یسته، ښکلی ګلرنګه ښکاري

داسمان ستوری چې سجده کړی ورته
پیدا ایښتي پیدا له ننګه ښکاري

## د لونګین ټال

د تضا دونو مجموعه شوه په ځان پوه نه شوله
هم ئی خند لی هم غوصه شوه په ځان پوه نه شوله

لچک ئی وتاړه روانه شوه د وروړ کا له ته
بیرته خپل کورته راستنه شوه په ځان پوه نه شوله

ما ته راوړاند ی شوه چې حا ل د خپل زړګي ووائي
لنډه خبره ئی اوږده شوه په ځان پوه نه شوله

د لونګین په ټال ئی لوبی خاپیرو کولی
د ښکلاګانو معجزه شوه په ځان پوه نه شوله

د شپی په ښکلي شین اسمان کی ئی غټ ستوري شمارل
پدی شمارلو کی اوده شوه په ځان پوه نه شوله

## د تـــــندی خـــــال

وتـی ښـایـستونـو کی خـایست جـانانه ستا دی
خـال دی د تـندی ښکلـو خالـونـو کی باچا دی

ښکلی دی وینبته، ښکلی دی شونډی ښکلی سترګی دی
نـوم دی د خـایست د زور خــور شــوی پـه دنـیا دی

ته چې چا تـه وګوری په یـو نـظر ئـی زړه یـوسـی
زه یــــوازی نــه یـــم زړه دی وړی د هــــر چـــا دی

بیا به د بلـۍ په سر جانـانـه خـنداګـانـي کړو
وار زمــونـږ پــه کـلـی کـی راغـلـی د خـندا دی

درومـی دا تــیـاری د ژونـدون نـوره به رڼا راځـی
ســتورې راخـتـلـی ګـوره هسک کی د سبـا دی

# لوړ اند[۱]

د چا غټ د چا کوچنی د اند جهان دی
د خپل عقل په کچ اند د هر انسان دی

د لوړ اند خاوندان نه مري تل ژوندي وي
سقرات، که افلاطون او که لقمان دی

چې ئی ذهن شی بندی اند ئی راټیټ شي
له هغه پوهان نه اند ښه د دهقان دی

چې ئی پوهه په خدمت کی د پرد و وي
خامخا د پوهان ذهن بندیوان دی

ستوری داسی مشکل نه شته چې حل نه شی
که بنده ته وي ډیر ګران خدای ته اسان دی

۱) سوچ ، فکر

# د سوچ ازادۍ

د پښتو او غیرت جوړ ځما جانان دی
تل راکړی ئی د مینی امتحان دی

په ښایست او په ښکلا کی ساری نه شته
هم په خوی کی د وفا د بڼ سلطان دی

مال دولت به تری نه واړه صد قه کړم
په لکونو روپو ئی د یدن ارزان دی

دی د سوچ په ازادئ باندی مین دی
په همدی خبره هر پوهان ته ګران دی

کبیر ستوری د کونړ ئی انډ یوال دی
چې بوډا سره بوډا ځوان سره ځوان دی

# د حجری سینګار

ټنګ ټکور خو د حجری ۀ ول سینګار دی
خوږ اواز د شاولی یا د ګلزار دی

ادم خان ورته سرټیټ کړ په تعظیم شو
چې رباب په غیږکی پروت د بختیار دی

چې ماس خان مو په دوکړو کړه دیره مسته
د ملی اټن راغلی خدایګو وار دی

ستوری وائی ورخوځیږی اټن تود کړی
خوزښت [1] نوم دی د ژوندون مونږ ته پکار دی

(۱) حرکت

## د مېينې مدرسه

ما لوستلي تولنيزه فلسفه کې
خوشحالي شته د غمونو په سينه کې

په دنيا کې د تضاد قانون چليږي
ژوند ژوندی دی د تضاد و مجموعه کې

چا به غوږ ورته ايښود ی هډ ونه وی
که خوند نه وی د مجنون د غم کيسه کې

په سختيو کې چې پوخ شو نو استاد شو
غټ طبيب شو د رنځونو سلسله کې

چې پوهان ئې پوهنتون کښې موند ی نه شي
ستوری ومونده د مينې مدرسه کښې

# د ګلــــو لــښنــڼه

زمــونــږ پــه کلـی کـی د یره وه خــو تـا نــه پــیـــژنــده
د ښـــلا ګا نــو مـــلکــه وه خـــو تـــا نـــه پــیــژنــد ه

هــر مــازیګـر بـه ئی مـنګـی د ګــود ر غــاړی تــه وړه
تـل کــشره خـور ئــی بـدرګـه وه خــو تـا نـه پــیژنـد ه

د تـورو زلــفـو خـوشـبـوئـی وه تـــول چـــم کـی خـــوره
د ګلــولـښـته وه غـونـچه وه خو تـا نـــه پـــیــژنـد ه

نـور می مـه پـو ښـته خـو بـس دومره درتــه وایــمه زه
خـوی او خا صـیت کـی پـښـتـنه وه خـو تا نه پــیژنـد ه

ډ یـر ئی د مـیـنی اور کی وسـیـزل ګـواه دی ســـتوری
مـیـنـه ئـی ځـوانـه وه تــوده وه خـوتـا نـــه پـیژنـد ه

# خـــبـــری

پـــه غـور ورتـه غـــوږ شـــی چې د چـا خـــبـری کـړي
د ځــان کـــه د د نـــيـا کـــه د اشـــنـا خـــبری کـــړي

په هـره يـوه خبره کـی ئـی پـند او ارزښـــت شـــتـه دی
د د يـــن کـه د د نـــيا کـه د عــقـبا خـــبری کـړي

خــبرو کـی ئـــی تـومـنـه ده د مـيـنی ګـــــډه کـړي
د نـــن کـــه د پـــرون کـــه د ســـبـا خـــبـری کـړي

مـا زړه ئـی پـه خـــوږو خـــوږو خـبـری دی بــا يـلـلـی
د مــــيـــنـــی د د ســـتور کـه د وفـــا خـــــبری کـړي

بس دومره راتـه ووايه ای ســـتوريه نـور پـوهـــيـږم
چـــې تـا تـه پــه ژړا کـه پــه خـندا خـــبری کـــړي

# حــــق

اول حــق پــه هـــر بـــنــده د خـــدای غـــــفـا ر دی
پــس د خـدای نــه، بــیـا حــق د مــور او پـــلا ر دی

پـــس لـــه مـــرګــه بـــه ئـــی هـــم روح نـــاارام وی
چـــې اخـســـتـی چـــا د مـــور او پـــلا ر ازار دی

پـه د نـیا کـی هـم ښــه ورځ مـــونـد لـــی نـــه شـــي
چې خـد مــت د مـور او پلا ر نـه ښوک انـکـار دی

د بـــخــت ســتـوری بـــه ئـــی رون وي تـــل تـر تـلـه
چـې رښـتـیا د مور او پلار خـوک خد مــتـګـار دی

# د ګلــو کاروانــونــه

د مــینی پــه مــستی کی مــست خــیا لــونه ځــي راځي
کــمڅیِ چــې دی په شــا با ندی تــا لــونــه ځــی راځي

دا زور دی د ښــایــست نــدی نــو وایــه راتــه څــه دی؟
مـــیـــن چــې دی ســـلام تــه بـــهــیرونــه ځــی راځــي

دا خــوب دی کــه ربــتــیا ده پــه کــوڅه کــیــدی ولاړیــم
پــه کــومــه چــې د ګــلــو کــاروانـــونــه ځــی راځي

لــید ل مــی ســتا ارمــان دی امــیدوار دی دلــیدویــم
پــه ســترګــو کــی می ســتا شــنیکی خالــونــو ځی راځي

پــه مــینه کــی هم ستوری ښــتو نه پریږدی پــښتو کړی
که هر څو ئی په ژونــد کــی تــوپــانــونـــــه ځــی راځــي

## د کار انرژی

انرژی د کار ده مینه، بې له مینې کار نه کیږی
ډېر رنګونه لری مینه یو پر بل با ندی بدلیږی

پدی باندی پوهید نه ستوری دی هنر د مینې
ټولنیز رنګ کی د مینې عبادت هم شمېرل کیږی

## د زړه زور

چې سوزیږی دا خو ستا د عشق اور دی
په تا باندی د وطن د مینې تور دی

شوی بوډا خو لاس له مینې دی وانه خست
ستوری وایه ستا په زړه کی څومره زور دی

# څېرې ګرېوان

د ليونی عاشق سره څيری ګريوان مزه که
د محبت قاتل ته غرېئی د جانان مزه که

پرون په مخه با ندی راغی په خندا کی وويل
د ادم خان او درخانی د عشق داستان مزه که

بلبلان هسی ترانی د ګل په بڼ کی وائی
د دار په سر با ندی د مينی امتحان مزه که

د تورو زلفو خوشبوئي کی پروت بی خوده ښه يم
د لونګين په خوا کی خوب شپه د باران مزه که

ډ يری خبری وکړی دائی په اخر کی وويل
ستوری په ځمکه څه کړي؟ ستوري په اسمان مزه که

# د خیالونو سرلیک

دعشق فلسفه ده خوند کوي چې پرې ګړیږم
دا ستا د ښکلو سترګو په صفت کله مړیږم

زاهد په سجده پریوت ستا اوربل ته کتی نه شی
خو زه دی د اوربل ځنی تاویږم راتاویږم

شین خال به دی د حسن، د خیالونو خپل سرلیک کړم
شربت ته دی د شونډو به پسخیږمه ، پسخیږم

دا ستا ښکلی دیری کی یوی شپی ته می زړه کیږی
په بیره درروان یمه حتمی به درسیږم

د ستور د عاشقی دی ماتولی ستوری نه شی
دا ستا په یارانه کی چې کړیږم خوشحالیږم

# نیمه شپه

چرګه بانګ مه وهه ځنګل کې مې جانان اوده دی
لا سبا ندی نیمه شپه ده ټول جهان اوده دی

ډېره موده وشوه چې شور مې د ګونګرو وانه ورېد
زمونږ په لار چې تېرېده، د ژوند کاروان اوده دی

ما چې تری هر سهار ګلان ځنو اوربل ته راوړل
جل و وهلو هغه باغ، بوډا باغوان اوده دی

خو د امید غوټی مې سر وهي ګلونه به شي
خير دی که نن ځما قسمت ځیری ګریوان اوده دی

ستوري ئی ټوله شپه پیره د بام په سر ولاړ وي
د ورځې خوب کړي چیرته پټ ستړی ستومان اوده دی

# وطن

فن د مینی می زده کړیدی پوهیږم
خیال کی تا سره یم هر ځای چې اوسیږم

هم د عقل هم د زړه می پری رضا ده
چې دا ستا د مینی اور کی وسوزیږم

که می سر او مال تالا شي پروا نه شته
ستا په عشق کی زه له سر او مال تیریږم

بختور یم چې ستا عشق می نصیب دی
ستا ښکلا او په خایست باندی نازیږم

عشق دی د غومره اوچت کړم ای وطنه
چې شوم ستوری په اسمان کی پاس ځلیږم

# د مېـــنــی هـنــر

هـــنــر د مـیـنــی د ژونـــد ون د پـــر مختیا چـینه ده
د هــر انـــسان د سـرېـتوب د پـیاوړتـیا چـینه ده

هـنـر زده کـیږی دا هــنـر د مـیـنــی هـــم کـسبی دی
زده کړه ئــی ښه ده دا د ژوند د خوشـحالـتیا چینه ده

هـــنــر د مـیـنــی دی مـلـګـرو پـــیــژنــدل د مـینی
مـــیــنــه د کـړو د ډ یــرو بــرخــو د رڼـــا چـــیــنــه ده

مینه یو څواک دی چې ئی رنګ ډیرو څواکونو کی شته
هـــم د شـــاعــر د تـخـیـل هـم د ښـکـلا چــیــنــه ده

ښـــایـست د مـیـنی نه پیدا دی کـبیر سـتوری وائی
هـم د زاهـــــد د عـــبـادت هــم د دوعـــا چـــیــنــه ده

# د نجوم سپاري

ما چې د ژوند په منظرو کې خوبونه لید ل
تا د نجوم په سپارو کې پالونه کتل

په سوچ کې تللی وې یو ښکلی پا ل ته
چې ما دروکتل د ځنې خا ل ته
تا ویل راوخیژه د زلفو تا ل ته
ما دې خورو زلفو اوږدو کې تالونه وهل
تا د نجوم په سپارو کې پالونه کتل

تا ویلې مینه غرنې خو ند کوي
ورسره ژوند د سوکا لې خوند کوي
ما ویلې سوچ د ازادۍ خوند کوي
ما د خپلواک ژوند ون ورشو کې ګلونه تومبل
تا د نجوم په سپارو کې پالونه کتل

تا ویلې ژوند د ننګیا لو خوښوم
پت او غیرت د میړنو خوښوم
ما ویل مینه کې پښتو خوښوم
ما د کونړ په سردرو کې سیلونه کول
تا د نجوم په سپارو کې پالونه کتل

تا ویل سپوږمۍ سره وې ستورې روان
چې وریځې نه وې شین ځلیږي اسمان
ما ویل بس دې دومره، پوه شوم په ځان
ما د قسمت په د فترو کې نومونه ځیړل
تا د نجوم په سپارو کې پالونه کتل

## د مېينې ځواک (۱)

تولید ی خاصیت د مینې نه پتېږي
ځواک د مینې نه ځواکونه پیدا کېږي

دا هم ځواک د مینې دی ستوری که ځیر شې
چې هر چا ته خپل جانان ښا یسته ښکارېږي

۱) توان، زور قدرت

## ولوله

داد مینې دښمنان مې دښمن بولي
چې مې تن کښې ستا د مینې ولوله ده

ستا په مینه که مې سر لاړ شي رضا یم
دا ځما د زړه د کومې فیصله ده

# د خپل کلي یاري

مازیګر ګرزي ځلمي پلي پلي
پیغلي چې بر ګود رته ځغلي ځغلي

د پیغلو تیل کي چې ایسار شي سړي
په منګوټو باندي ئي ولي ولي

یا ئي وژلي یا ټپي راغلي
څوک چې ګودر غاړي ته تللي تللي

د نازکتو کي د زړه ښکار کوي
د پلولاندي ګوري غلي غلي

دا زړه بایللي به هیڅ نه یاده وو
د ډیروجوړ شو د عشق څلي څلي

یاري د خپل کلي مزکه ستوریه
نه کیږي نورو سره کلي کلي

# سیاسی پیژند

ویښ شه رابیدار شه وخت دی بیا د امتحان دی
ای پښتون ځلمیه

بې د پښتو ژبې نه سیا سی پیژ ند دی ګران دی
ای پښتون ځلمیه

پا خیږه پا خیږه د حالا تو رنګ بد ل کړه
دی ډ ول حالا تو کی خو سخت زمونږ ګزران دی
ویښ شه رابیدار شه وخت دی بیا دامتحان دی
ای پښتون ځلمیه

خپل پیژ ند سمبا ل که، په پښتو او پښتونوالی
بې له خپل پیژ ند نه ، پیژند لی څوک جهان دی
ویښ شه رابیدار شه وخت دی بیا دامتحان دی
ای پښتون ځلمیه

برخه د پښتو چې خوري لیکل په پښتو نه کوي
لری له مقا م کړه که وزیر او که سلطا ن دی
ویښ شه رابیدار شه وخت دی بیا دامتحان دی
ای پښتون ځلمیه

ستوری وائی قا م چې کله ژبه رسولی ده
وتی په قا مونو د نیا کی نوم نشان دی
ویښ شه رابیدار شه وخت دی بیا دامتحان دی
ای پښتون ځلمیه

## بــنـــد یــــوان ذهـــن

بــدلــه زمــانــه شــوه ژونـــد لــه بـیـــخــه بــدلـــوي
کـــوږ مــار بـــه نـــور پـــه کـــوږو یــارانـــی نه جـــوړوي

د ځــمکی پـــه سر لاری شـــوی رالـــنډی مـــزل لنـډ شـو
جـــانـــان به د راتـــلـــو نـــوری بـــهـــا نـــی نـــه جـــوړوي

ذهـــنونه بـــنديوان شـــولـــو عـــمری بـــه تـــا بـــعـــدا ر وی
پـــښنو تـــه بـــه ئـــی څوک نـــور ځـــولـــنی نـــه جوړوي

د عـــشـــق او مـــحـــبت خـــبری هـــم شـــولـــی پـــیلـــی
عـــاشق بـــه د خـــپل عـــشـــق نه افـــسا نـــی نـــه جـــوړوي

چـــې ذهـــن ئـــی بـــندی شـــی مـــا لـه ســـــتوری اوریـــدلـــي
هـــغـــه بـــیـــا نـــا پـــیلـــی تـــرانـــی نـــه جـــوړوي

# زرمحل

مینه مې خوښه ده په زړه کې ئې د هر چا غواړم
د محبت او د وفا ډکه د نیا غواړم

چې زرمحل ته سجده نکړي صرف کعبې ته ئې کړی
داسې زاهد داسې امام داسې ملا غواړم

چې احسا سات او عقل دواړه پکې کړي شا ډولی
داسې ټا ټوبې د ژوندون د خپل اشنا غواړم

د ژوند غمونو اوما تمونو دی تنګ کړی خلک
په هر محفل کې د ژړا په ځای خندا غواړم

د اوږی شپه کې وریځې خوند نه کوي هرڅوک وائی
په شین اسمان کې ستورې ځلنده رڼا غواړم

# د مغــزو ځــواک

میـــنـــه کـــی زور دی د پـــښـتـــو څـــومـــره دی ؟
ښـــکـــلـــو تـــه وس دی د کـــتـــو څـــومـــره دی ؟

هـــســی مـــــغـــروره دی، ځـــوانـــۍ تـــه مـــه شـــه
ووایـــه ځـــواک دی د پـــښـو ځـــومـــره دی ؟

خـــپـلـی مـــوخـــی تـــه رســـیـــدی شـــی کـــه نـــه ؟
تـــوان پـــه لاره دی، د تـــلـــو څـــومـــره دی ؟

کـــه وغـــورځـــیـــږی پـــاځـــیـــدلـــی شـــی بـــیـــا ؟
قـــدرت دی بـــیـــا د پـــاځـــیـــدو څـــومـــره دی ؟

پـــه عـــــقـــل لاری د ژونـــدون ســــمـــیږی
ځـــواک او طـــا قـــت دی د مـــغـــزو څـــومـــره دی ؟

پـــام کـــوه ســـتوریـــه چـــې ســـتي دی نـــه کـــړي
تـــا و دی د خـــپـــلـــو پـــلـــوشـــو څـــومـــره دی ؟

# غاړه غړی

د خوی ئی رنګ په شان ښکلا ده
ځکه تری سر قربا نوومه
د سر په بیه هم وړیا ده
غاړه غړی ور سره ځمه

د ښا یستو نو معجزه ده
ځما د زړه د سرد مه ده
د غیر تو نو مجمو عه ده
ختہ ئی جو ړه له حیا ده
د مینی راز به ئی سا تمه
غاړه غړی ور سره ځمه

په خپل همت با ندی نا زیږي
له خپله لوزه نه تیریږي
د ژو ند په دود با ندی پو هیږي
د غره لمنه کی پیدا ده
ور سه[1] ګور ګوری تہو لومه
غاړه غړی ور سره ځمه

د ګلو لښته ده ښا یسته ده
د نوی ژو ند خوږه وږمه ده
د اسما ن ستوری پلو شه ده
د پښتونخوا د غرو رڼا ده
زه ئی په مینه و یا ړ کوومه
غاړه غړی ور سره ځمه

## د ملت بابا

خلوېښت کاله د ملک مشر حسابېږي
خو په ژبه د ملت هيڅ نه پوهېږي

سپکاوی که درناوی دی ستوری وايه
چې ئې دی بيا د «ملت بابا» نومېږي

## کار او زحمت

بې پته ژوند نه د پت مرګ په سر د دار ښه دی
د ژوند په چار کې تل پخپل ځان اعتبار ښه دی

سړی پخپل کار او زحمت او چت مقام ته رسي
د هسې خوشې ګرزيدلو نه بيګار ښه دی

يار چې د يار په خوشحالۍ باندې خوشحاله نه شي
د دا رنګ يار نه سړی ټول عمر بې يار ښه دی

ستوری اميد ئې د راتلو له لاسه ورنکړي
د نه راتلو نه د راتلو ئې انتظار ښه دی

# د شنو سترګو باچاهي

ښکلي پسرلي دی د کال ټولو موسمونو کی
ناخي بوراګان هر ځای کی ځانګو د ګلونو کی

کم[1] شي د انسان او چاپيريال د حرارت توپير
شي سپما تودوخي، وينه ګرمه شي رګونو کی

خيال د هر عاشق د خپل جانان غيږه کی لوبی کړی
ښکلي لا ښايسته ښکاری په ښکلو لبا سونو کی

سم او غر سمسور شي د رنګونو نړۍ جوړه شي
ژوند شي را ژوندی مينه شي ځوانه مين زړونو کی

جوړ به وی له کاڼو چې اثر وربانديونکړی
رنګ خو تل اثر پريږدی په زړه او د ماغونو کی

ستوری چې ماښام کی د رنګونو ننداره کړله
رنګ دی د شنو سترګو باچاهي کړه په رنګونو کی

۱) لږ، د تو دوخي درجه کميدل

# د تضادونو کور

د ژوند بازار کی بیله بیله د هر چا سودا ده
څومره توان هغومره غتهٔ ئی رښتیا سودا ده

خدایګو ټولنه د انسان د تضادونو کور دی
په هر یو ګوند، ډله ټپله کی جدا سودا ده

څوک د خپل ځان څوک د مزدوراو څوک د قام غم خوری
چا سره زړه کی د انسان د خوشحالتیا سودا ده

څوک د ژوندون جرړی وباسی انسانان وژنی
د چا دماغ کی د ژوندون د پرمختیا سودا ده

چې د قامی وحدت ګلان د پښتون و غوړیږی
د قلم څوکه کی د ستوری بس هم دا سودا ده

---

د سباوون د خپرونی د مشاعری لپاره چې د خدای بخلی نامتو شاعر محمد هاشم زمانی په نوښت جوړه شوی وه.

## شنې سترګې

په ناز ناز کاته دي ندي بې اثره
خدای دي مه که دا شنې سترګې له نظره

اشاره که د بڼو په څوکه وکړې
سر به زار کمه جانانه ستا له سره

چې زه څنګ کې درسره یم سودا مه کړه
ستا به زه کوم خدمت له هر چا غوره

په پښتو به دي پالم پښتنه مینه
دي کې نه شته دي کنه بالله خبره

نظرئی د کبیر ستوری پښتنی دی
د پښتو نارا ئې ده د ژوند سندره

# ابدي نوم

پدی د نیا کی دا د ستورد ژوند دی
ثوک دی با چا او ثوک ملنګ د کند دی

خو دواړه وائی چې په ژوند کی خوند دی
که هر ثو اوږد شي بیا هم ۀ یرلنډ دی

ښه کوه ښه چې یا د دی ښه پا تی شي
که ښه ونکړی نو به ثه پا تی شي

ژوند ته دی ښه ښکلی ما نا جوړه که
په کی هم برخه د عقبا جوړه که

نیکي کوه چې دی نیکي پاتی شي
نوم دی د نیا کی ابدي پا تی شي

د سبا ستوری شه رڼا جوړه که
چې ئي پښتون نو پښتونخوا جوړه که

# اختر

اختر نوم د خوشحالۍ دی ، وی خوشحاله پکی زړونه
مرور سره پخلا شي يو پر بل واچي لاسونه

په ميلو دی ښايسته کړی تل اختر زمونږ نيکونو
مونږ ته ئی دا دود پريښودی چې وهو پکی ډولونه

اختر ولمانځۍ ملګرو کينه وباسی له زړونو
خاندي خاندي خوشحاليږي جوړ کړي مست اتڼونه

که ژوندی ژوند کول غواړي نو بيدار شئ حرکت کړئ
حرکت بی برکت ندی په کی شته دی برکتونه

مړي نکړی حرکت، ژوندی واړه حرکت کړی
حرکت د ژوندون سا ده پکار دي حرکتونه

چې روان وی حرکت کړی، شی خپل ژوند سمبالولی
د بخت ستورى ئی روښان وی رڼوي لاری رووونه

# درنه ژبه

که بری غواړی نو اصول د اشتهار که راخپل
د بل به نه غند ی د خپلی دی صفت کوه تل

په خپل وطن کی سیا سی واک او اقتدار که راخپل
تیری به نه کړی پیروی د محبت کوه تل

که دی سل زره ژبی یا دوی دا ۀ یره ښه ده
خپله به نه پریږدی د خپلی دی خد مت کوه تل

د نړۍ ژبو کی پښتو ژبه په تول درنه ده
ستوریه د خپلی درنی ژبی حفاظت کوه تل

# ټال

پسرلی می موسمونو کی خوښږي
د ځوانی وخت می وختونو کی خوښږي

تا چې رنګ ورته د شونډو خپل پور ورکړ
سره ګلان می په باغونو کی خوښږي

که د زلفو ټال دی اچوی درځمه
ټال د زلفو می ټالونو کی خوښږي

دا یوه خبره یاد د رسره ساته
پښتنه مینه می زړونو کی خوښږي

چې دا ستوري د اسمان ئی په سر ځانګي
اوسید ل می جګو غرونو کی خوښږي

# د ناز خندا

دغه خوک ده دغه ښکلی لورد چا ده
د ښایست سره ئی مل د ناز خندا ده

سر به ولی عاشقان وربا ندی نه ږدی
چې هم پت ده هم غیرت ده هم ښکلا ده

په یوه ادا بس زړه له سړی وړینه
په د ستور د محبت با ندی اګا ده

دا په مینه کی درخو نه کمه نده
چې د خپلو پترو شرنګ ته په ګډا ده

مخ چې نه پټوی(١) هیچا نه ستوری وائی
پخپل حسن ده مغروره بی پروا ده

١ ) پټوی

# مرګ

مرګ د يار کور ته ورتلل دی؟
که د يار ځينی رخصت دی؟

څوک له مرګه خلاصيدی شي؟
که په هر چا مسلط دی؟

مرګ او ژوند سره بيل بيل دي؟
که د مرګ ژوند معرفت دی؟

مرګ د ښکلی ژوند ون پای دی؟
که ژوند ون په بل صورت دی

پس له مرګ ژوند تخيل دی؟
که رښتيا دی حقيقت دی؟

ځم له ستوري ئی پوښتمه؟
مرګ سکون که حرکت دی؟

# چـــوکـــر

چې هم ډاکو وي، هم قاضی وي عدالت به څه وي؟
چې هم معشوق وي، هم عاشق وي محبت به څه وي؟

چې نوکر ونیسي نوکر خلک ئي بولي چوکر
چې د چوکر کوي خدمتنو دا خدمت به څه وي؟

مال دولت نه دی چې سړی پری خپل ژوندون سمبال کړي
چې ژوند خدمت کی د دولت وي نو دولت به څه وي؟

چې غل له دغله ځنی غلا کاندی غلچکی نو مېږی
د غلچکیانو په محفل کی صداقت به څه وي؟

چې قانون غله جوړ کړي د غلو ګټی خوندي وي پکی
ددی قانون بیا په وګړو حاکمیت به څه وي؟

منم قانون نه دی چې هر څوک د قانون تابع وي
چې عدالت قانون کی نه وي قانونیت به څه وي؟

پرون خبر شوم چې ریبار ځانته ریبار نیولی
خبر به څنګ ستوری ته راوړي حقیقت به څه وي؟

# ژونــدى ښايست

خـوند د هرى ميوى بيل دى ، د هـر ګـل بـيله ښکلا ده
بـڼ کى هـر ګـل د کــتـو دى ، ښـکلا مـينى ته پـيدا ده

چې ښـکلا او مـينه نه وي ، وايـه څـه به دا د نـيا وي؟
دا ددى دواړو بـــرکـــت دى چــې ودانــه دا د نــيا ده

دا مـنم چې په نړۍ کى ښـايـستـونه رنګ په رنـګ دي
خو با چې د ښـايـسـتـونو درنګونو پـښـتونـخوا ده

په تاريخ د مـحبت کى نوم د ډيرو معـشـوقـــو شـتـه
خـو پـه ټـولـو کى مشهوره د مـجـنون تـوره لـيلا ده

چې ژوندى ښايست په زور دى د پالنګ په لور ئى بيائى
ســـتورى وايـه راتــه وايــه داثـواب دى که ګـنا ده؟

# د محبت کور

شاعره تا خو د دنیا په سر جنت جوړ کړی
چې تخیل کی دی خپل کورد محبت جوړ کړی

هر څه کولی شی ازاد ئی څه چی غواړی کیږی
د تخیل خو خدای جنت په شان خاصیت جوړ کړی

ته تخیل کی ځان باچا کړی نوکران دی ګرزی
د عدالت تخت دی په خیال کی ښه اوچت جوړ کړی

په تخیل کی پا بندی د وخت او ځای نه شته دی
له وخت او ځای دی ، نا پیلی سلطنت جوړ کړی

د تخیل په نیلی سور چې شو اسمان ته وخوت
ستوری د یار په څنګ کی ژوند ښه د عزت جوړ کړی

# وچــت خــیالــونــه

نــيمه شــپه راغلـه خـوبـولـي عـاشـقـان وېـښوي
د ښـکلا زور ئی احساسات د زور او ځـوان وېـښوي

د پـوری کـلـــي ښـکـلـي واړه نــنـداری تــه ولاړ
بـره دیره کی په مکـیز مـکـیز جـانـان وېـښوي

د ســــوچ او فــکــر ازادۍ بـانـدی مـیـنه ښکاري
مـغــزو او ذهـن کی انــدونـه د انـسان وېـښـوي

وچـت خـیالـونه ئی د ســتورو په اسـمان کی ګـرزي
د لـوړ خیالـونـو خـاونـدان په ټـول جـهان وېـښوي

# د وخـــتونو ســـالار

د وخــت انــتــظار نـکــړی اړوی د یــارانـــی رنـــګ
ســا لار دی د وخــتـونـو بـد لــوی د زمــا نـــی رنـګ

بـلـبل بـه ګلان پـریـږدی ستا اوربـل کی بـه د یــره شـی
سـاقـی بـه نـوی شی نـوی بـه وی د پـیما نـی رنـګ

ســـازونـــه بـــه د مـیـنـی غـــږوی د فـــن شـــاهـکـــا ر
د ژونـــد هـــــره د ره کــــی رنـــګوی د تـــرانـی رنـــګ

تـاریـخ کی د غــیرت بـه د مـینو کـیسی لـیک شـی
کـمخـۍ چې وی عا شـق تـه د بـیـړۍ او ځـولـنـی رنګ

د ســـتوری پـلـوشی بـه هـری خـوا تـه راخـوری وی
ګلـګـون بـه پـه پـښـتو وی د عــا شق د افـسا نی رنګ

# ښـــا یــــسـت

پــــروا نــــه کـــــوم د ګـــتهـــی د تـــا وان
نــصــیــحــت دی راتــه نــکــړی نــا صـــحـا ن

کــه دا ښـــکــلـــي د جــهـا ن واړه راغــونــډ کـړي
وربــه نــه کـړمـه نـــیـم نــوک پـــری د جــانـــان

کــه ځـــمـا پــه سـترګــو وګـــوری جـــا نـــا ن تـــه
وی بـــه نــه شــتــه بـل ښـــا یـستــه د ده پـه شـــان

خـپـل ښا یست ور پـوری اور شـو خـون ئي واخـیست
یــــو د بـــــل پـــــسی سـر ږدی پـــری عـــا شــقـان

چـي د مـــیــنــی پـــه هـــنـر بـــا نــدی پــــوهــیـږی
ســــتوری راولـــی چـــي ولـــیـکــی داســــتـا ن

## نــمــه

خــم مــات شو ســا قــی لاړلــو بــل خم دلـته راوړي
یاران تـول تـږی نـا ست دي تـش جامـونـه کـړنګـوي

نـغـمـه ئـی جـوړه کـړی د جا مـونـو د کـړنـګا نـه
پـه خـیا ل کی هـر یو ځـا نـته خـپلـه تـنـده ماتـوي

جـا دو د محـبت دی که مـنـطـق[1] او دلــیلـونه
د تـنـدی دا ګـــړی پـه خـنـــدا خـپلـه تـیـروي

مـنم نـا امـیدی خـو سـکـه خــور د نـاکـا مــــۍ ده
داتــمـه او امـیـد ســړی هــد ف[2] تــه رســوي

پـښـتون قـامی وحدت په لوری ســتـوري سره ځـمه
دا لاره کـــه اوږده ده خــو مـــزل ئـــی لــنـډ وي

---

۱ ) سم اند
۲ موخه

# میلمنه

عمر کی خا مه ده په عقل کی پخه ده جنۍ
د ګلو لښته ده پخپل ښا یست غره ده جنۍ

د رنګ ښکلا ته ئی بلبلی په سجده پرتی دي
له پوری کلی نه راغلی میلمنه ده جنۍ

سر به تری زار کړم په بدل د سر ارزانه ښکاري
د وفا تول کی په همځولو کی درنه ده جنۍ

ورېمې د مینی خوره وي په چم ګا وندۀ کی زمونږ
هر یو تن وائی چې ځما د زړه تېو تېه ده جنۍ

ستوری خبر کۍ چې لفظو نو کی انځور وبا سي
خوی او خا صیت کی کته مته پښتنه ده جنۍ

# د ژوند افسانه

ستا په محبت که می سر لاړ شی پری رضا یمه
ته می معشوقه ئی زه ستا مینی ته پیدا یمه

ستا دمینی جوړه افسانه ځما د ژوند شوله
تل به دی د ځنو د اوربل ګلونه ستا یمه

اوس خو دی د حسن پلوشی راځوانی شویدی
ته چې لا وړه وی تا به خپله ویل واوا یمه

زړه می ستا د حسن په دربار کی افسری غواړی
هره ورځ لمانځه کی پاک الله ته په دوعا یمه

ستوری وائی هر څو که ډیر ښکلی په د نیا کی شته
خو زه مین په ښکلو کی پخپله پښتونخوا یمه

## ښاغلي ایمل خان ستوري ته

نیکمرغه دي ژوندون شه هره ورځ دي لوی اختر شه
واده دي ایمل خانه مبارک او بختور شه

واده د مینی او ګرانښت ترون دی
دانسانی ژوند د پا یښت ترون دی
د ښکلا ګانو او ښا یست ترون دی
د ګډ ژوند دا ترون دي پسرلی د ټول ټبر شه
واده دي ایمل خانه مبارک او بختور شه

د مینی اود سولی دی د یره شي ستا سی کور
ټغر دی د یووالی او اتفاق شي پکی خور
د پوهی او پوها نو دی پیدا شي پکی زور
جونګړه دی د ژوند دامید ونو پوخ سنګر شه
واده دي ایمل خانه مبارک او بختور شه

امید دی چي انسان د کامیا بی پهلوری بیا ئی
دماغ د سوچ او اند د خپلواکی په لوری بیا ئی
ټولنه د ژوند ون د سوکا لی په لوری بیا ئی
دا ته پدی ټولنه کی غټ ستوری د سهر شه
واده دي ایمل خانه مبارک او بختور شه

# د شپې څراغ

ځلمو کاږه پټکي په سر کړل مازیګر د پاره
پېغلې ځانونه جوړوي بیا د ګودر د پاره

ما په نرۍ وینو د زړه د مینې بڼ وتره کړ
ګلان مې وکړل اشنا ستا د چکر د پاره

مستې د مینې چې خوشبوی کې د ګلونو تاوشي
داسې وږمه شي چې ټکور شي د پرهر د پاره

زه به دې هر سهار سلام ته د شین خال د رخمه
که ټال د زلفو راته واچوې اختر د پاره

پلار ته دې ووایه چې لږ شانته انصاف وکړي
ځواني مې خاوري کړه کنه ستا د ولور د پاره

ستوري دې ټوله شپه رڼا په تمامي چم کوي
د شپې څراغ ته حاجت نلري سفر د پاره

# د وفا سندرې

مه پوښته لیلا نه چې د چا سندرې وائي
کوڼ خو نه ئې غوږ شه چې د استا سندرې وائي

غواړې چې بلبل سره سیالي وکړي چمن کې
هره شپه شوګیر وي تر سبا سندرې وائي

مست ئې بوډا ګان کړل مستې مستې ګډاګانې کړي
هم واړه ناري وهي واوا سندرې وائي

پرون ئې په جار وویل چې جفا سره جفا کوي
نوره به په ژوند کې د وفا سندرې وائي

ستورې ته ناري که چې مجلس زموږ رنګين شي
نن ورته د ښکلې پښتونخوا سندرې وائي

# د لفـــظـــونو ملغلـــــری

نــا صــح وائی چې پــريــږده د پــښتــو پـــښتــو خـبری
زه وا يــمه چـــې لـــړی شـه د مـخـی نـه مـی لـــړی

مـطلـب تـه دی رســـيــږم ږ يـر ښـــه پـری زه پـوهـيږم
ستا نـه راځی پـــيرزو چې د ژونـد نـوی شی سندري

خــو زه بـــه د پـــښـتـو اود پـــښـتــو ســـند ری وا يـــم
چې نـــه شـــی مـــو د يـا ده او مـغــزو ځـنـی بـــهـر ی

پـــښتو د پـښتـو ن ژونـــد دی زه له ژوند ه نه بيلـــيږم
که هر څـو دوړه وی[۱] د خولی نـه ګـوړی او شـکـــری

دا ســـتوری بــه مـيلمه کم د حجری ټنګ او ټکور ته
چـې وا چـوی هـنـر کـــی د لـــفـــظـو نـو مـــلـغـلــری

---

۱) دوړه وی: شنيدی (مالګه دوړه ول)

## د ناکامۍ مور

بخت ،مینی او سولی سره مل چې امید ونه شی
ژوند کی را زرغون هر خوا رنگونه او گلونه شی

خیال که د جانان په څنګ لوبی کړی نو ودی کړی
توند د جانان کور ته مزلونه او گامونه شی

رسی به جانان ته چې روان وی څوک، ودریږی نه
هر څو که په لاره کی خنډ ونه ، کړلیچونه شی

مور د ناکامۍ نا امیدی ښکاری پوهان وائی
ختم د ژوند واړه هڅ فونه ، مطلبونه شی

ستوریه ستا د هیلو او امید غوټۍ غوړیږي
جوړ به د قامی وحدت سازونه سرودونه شی

## سـرسـا یـه

نـن بـیا جـانـان د خـپل رباب غـوږونـه تـا وه وي
لـه قـصده د رقـیب لـه مـا لاسـونـه تـاوه وي

کـوږې وږې چې زلـفی ئی په شـا بـا نـدی ځـنګـېږی
د زلـفو پـه ولـو نـو کـی تـل زړونـه تـا و وي

چې ځوک ورتـه ور وګـوری نـظر ئی بـل خـوا نه ځـی
ښـایـست ئی ځان نـه سـترګـی نـظرونه تـا وه وي

پـرون ئـی راتـه وویـل سـرسـایـه دی ورکـومـه
نـن وګـوره لـه سـره مـی ګلـونـه تـا وه وي

چې رنګ په رنګ لفظونو کی انځوره ئـی ښکلا کړی
دا سـتوری تـری سـوچونه او خـیا لـونـه تـا وه وي

# د پېېزند کرکېچ

دا خلک ددی کلـــی دی سوچونه ئـــی پـردی دی
رواج ئی خپل پرېښودی دی دودونه ئی پردی دی

ماغزه ئی د اغیارو په تقلید کی دی لوی شوی
ځان خپل ترینه ورک شویدي ذهنونه ئی پردی دی

ګونګیان ندی څه وائی خو پښتو ویلی نه شی
د ښځی نر ، توپیر نه کړی لفظونه ئی پردی دی

کرکیچ دا د پیژند دئ که بل څه دی ستوری وایه
مخونه ئی اشنا دی خو خویونه ئی پردی دی

# د مېينې انګړ

ما تـه دا مـه وايـه چې دا مـه کـوه دا مـه کـوه
چا سـره مـه ودرېـږه چـا سـره خـندا مـه کـوه

ازاد انـسـان يـم ازادئ بـا نـدی مـين يـمه زه
مـا تـه خـبـره د روا او نـاروا مـه کـوه

مـينه روا کـه نـاروا ده نـه پـوهـيـږمـه زه
خـو دی د مـيـنی دود پـا لـمه هـيخ سـودا مـه کـوه

دوعـا خو ښه ده دوعـا تل کوه چې ورځ مـوښـه شي
پـه يـارانـه کی مـا تـه هـيـڅـکـله ښـيرا مه کـوه

لـږه وفـا وکـړه پـلـو لا نـدی راوګـوره نـن
پـښتون ځـلـمی يـمه لـه ما سـره جـفـا مـه کـوه

سـتورو رڼـا کـی مـی د مـينـی په انـګـړکی پرېږده
مـينی کی زړه کـوه پـروا تـه د هـيـچـا مـه کـوه

# بی باغوانه باغ

پوښتنه ګرانه خو ده
ځواب اسانه څه دی ؟

جام بی ساقی نه څه دی ؟
ساقی بی جامه څه دی ؟

بورا بی ګله څه دئ ؟
ګل بی بورا نه څه دی ؟

قام بی وطنه څه دی ؟
وطن بی قامه څه دی ؟

ارمان بی ژونده څه دی ؟
ژوند بی ارمانه څه دی ؟

باغوان بی باغه څه دی ؟
باغ بی باغوانه څه دی ؟

پام بی پوهانه څه دی ؟
پوهان بی پامه څه دی ؟

تال بی غزله څه دی ؟
غزل بی تاله څه دی ؟

وفا بی پته څه ده ؟
پت بی وفا نه څه دی ؟

بی رڼا ستوری څه دی ؟
ستوری روښانه څه دی ؟

## څه ووائی

چې دا بد درنګ ځا نته ښا یسته ووائی
نو دا ښا یسته به ځانته څه ووائی

چې هر څه وائی نو ویلی شی خو
ستوریه دا ښه ده چې څه ونه ووائی

## پښتانه

پاکه ربه ښاد اباد دا پښتانه کړی
د نړی په اولسونو کی درانه کړی

د بخت ستوری ئی روښان کړی په اسمان کی
خپل وطن کی ئی واکمن او کوربانه کړی

## ملا مت

مونږه پښتو نده پا للی ملا مت خپله یو
له خپل دفتره مو ویستلی ملا مت خپله یو

واکمن په وینه پښتانه دي خو پښتو نه کوي
نه ئی لیکلی ، نه ویلی ملا مت خپله یو

د قام بچي پوهان زمونږه، په پښتو نه روزي
پښتو ئی شا ته غورځولی ملا مت خپله یو

ځو چې پښتون نه شي پښتون ننګ په پښتو و نکړي
دنیا کی نه به یو ښاغلی ملا مت خپله یو

ستوریه پخپله مونږه پړه یو پردی ګرم مه ګڼه
پښتو پخپله مونږ ځپلی ملا مت خپله یو

---

پړه : ګرم ملامت

# ننګه

چې ټول عمر مې ګذران شي خوښ مې نه دی
بې وفا چې مې جانان شي خوښ مې نه دی

چې په خوی کې د بد رنګونه بد رنګ وي
که ئې رنګ د ګل په شان شي خوښ مې نه دی

چې خښتن د خپلې ژبې او کلتور نه وي
که باچا د ټول جهان شي خوښ مې نه دی

چې د بل له ویرې خپله ژبه پرېږدي
که افسر او یا سلطان شي خوښ مې نه دی

چې ئې ذهن بندیوان وي ازاد نه وي
که لیکوال او لوی پوهان شي خوښ مې نه دی

چې پخپله پښتو ژبه ننګه نکړي
که اتل او قهرمان شي خوښ مې نه دی

چې پخپله په لار تللی چیرته نه شي
چې د بل په زور روان شي خوښ مې نه دی

چې ئې واک اختیار پخپل کاله کې نه وي
که د ټول کلي دي خان شي خوښ مې نه دی

چې حقوق کړي د انسان د پښو لاندې
ستوریه خپله که لقمان شي خوښ مې نه دی

## د فکر او بیان ازادي

دانسانیت جذبه مې زړه کې دانسان خوښېږي
د ژمې شپه ځما په غېږ کې د جانان خوښېږي

چې انسانان پکې په ژوند کې نوښتونه وکړي
هم مې د فکر ازادي هم د بیان خوښېږي

زه د جهان یوه ټوټه یم بېلېدی ترې نه شم
داسې به کړم چې هم ځما هم د جهان خوښېږي

ښه پرې پوهېږم دوکاندار ځما نه ګټه کوي
شې مې پکار دي ګڼې کله مې تاوان خوښېږي

زه بې دلیله بې منطقه ګام هیڅکله نه ږدم
ځما په هر څه کې منطق دلیل برهان خوښېږي

ګلونه ډېر دي د هر چا خوښه چې کوم بویوي
ځما په ټولو کې ګلونه دریحان خوښېږي

رښتیا رښتیا وایم ملګرو لږ څه غوږ شئ راته
ستوري په ځمکه، هم مې ستوري داسمان خوښېږي

## د حسن جادوګره

دازاد سوچ د سبا وون خوږه سندره یمه
د ښکلاګانو د خانانو له تبره یمه

د نوی ژوند نوی نغمه یم
د ننګیالیو ترانه یم
زه د پښتون جانان د خولی پخه خبره یمه
د ښکلاګانو د خانانو له تبره یمه

زه د هنر دزړه تو ته یم
د ازاد ژوند ښکلی تپه یم
دهنر توکی یمه، جوړه له هنره یمه
د ښکلاګانو د خانانو له تبره یمه

لاس کی می زلفی لوبووم
ترینه ګلونه جوړوم
دمینی فن کی زه د حسن جادوګره یمه
د ښکلاګانو د خانانو له تبره یمه

زه په ښایست کی پښتنه یمه
په تول د مینی کی درنه یمه
ستوری شاهد دی تیره مینه کی له سره یمه
د ښکلاګانو د خانانو له تبره یمه

## د بلبلو استاذان

نر ځامن د منور شاځوان ريزوان
د هنر د ډګر دی لوی اتلان

په سند روئی حجری زمونږ تودی دي
پلار په شان دی د بلبلو استاذان

## ګلزار عالم

په رښتیا ګلزار عالم د ژوند ګلزار دی
خوږ اوازئي اوازونو کې تا جدار دی

د هنر د اسمان ستوری دی ځلیږي
د پښتونخوا په سندرغاړو کی شاهکار دی

## مستـه نـغمه

زمـونږ خـوښـږي د ازاد سـوچ تـرانه ونـيسه
مستـه نـغمه ونـيسه ګـرانـه بـا جـه کـي

ستـا د بـا جـي بـم زيـر پـرد و کـي
سـا پـي مومـند و اپـريـد و کي
پـه لـرو بـرو پـښتـنو کـي

د نـوي ژونـد د سـبا وون د سـاز ځـپه ونـيسه
مستـه نـغمه ونـيسه ګـرانـه بـا جـه کـي

لـه بـاجـي وبـا سـه غـږونـه
چـې کـړي پـخلا مـرور زړونـه
غـاړه غـړي ورکـړي لا سـونه

داتـحـا د او اتـفا ق خـوږه ټـپـه ونـيسه
مستـه نـغمه ونـيسه ګـرانـه بـا جـه کـي

ګـرزه پـه کلـو او بـا نډ و کـي
د سـيند پـه غـاړو ګـود رو کـي
د پـښتـونـخوا پـه غـرو رغـو کـي

د ستـوري کلـې تـه چې راشـي لږه خـپه[1] ونـيسه
مستـه نـغمه ونـيسه ګـرانـه بـا جـه کـي

---

۱) پښه

# خوږی مسری

دا «خوږی مسری» د سولی پیغام وړل دی
محبت د زړه په وینه کی شیندل دی

د اسمان د ستورو کتې کی یوه شپه ده
تخیل کی د جانان کور ته ورتلل دی

# خوښنه

شاعر او هنرمند د یوبل سره اړیکې او رشته لري له دې کبله د هنر د بڼ د یو شمېر بلبلانو لکه د پښتو د موسیقۍ د بابا استاد خیال محمد، انور خیال، استاد گلزار عالم، د خدای بخښلي استاد بختیار، استاد شاه ولی، استاد ماس خان، رضوان منور او شاه ځوان منور نومونه زما ددې کتاب په ځینو شعرونو کې یاد شوي. دا شعرونه په مختلفو وختونو کې پخوا جوړ شوي دي. د خدای بخښلي استاد بختیار روح ته دوعا کوم. د پورتنیو ژوندی هنر مندانو څخه مننه. چې زما شعرونه ئې پخپلو خوږو اوازونو ښکلي کړي دي.

همدغسې زه د استاد رحیم غمزده، استاد یار محمد ، ماسټرز علي حیدر، ماسټر رحیم گل، سیداگل مینا، زاهدالله اپریدي، نازیه اقبال،گل جان صادق، استاد نواب، نورالرحمن، شبنم، اشرف گلزار، غازي او فیاض خان، بریالي صمدي، شاهنشاه، گوهر جان، معشوق سلطان، سردار علي بنوځي او هدایت الله څخه ډیره خوښنه کوم، چې زما شعرونه ئې پخپلو خوږو اوازونو کې ویلي دي او استاد نذیر گل، فرخ زیب او شاکر زیب نوشهروي په ښکلي موسیقۍ کې کمپوز کړي ، زیاته مننه کوم.

همداراز د پیاوړي ملگری پروفېسر اباسین یوسفزی، د کابل د راډیو او تلویزیون پخواني ویاند سرار محمد همراز ننگرهاري او نامتو شاعر ، لیکوال، افسانه لیکونکي او د کوهاټ د راډیو ډایریکټر او د پښتونخوا د پوهنې د برې مشر لایق زاده لایق او تلویزیون ویاند ښاغلی هدایت الله گل تر ټولو زیاته مننه کوم، چې د ښکلو پروگرامونو کوربانه او ویناوال و.

په پای کې د نسیم خان ستوری څخه چې دا شعرونه ئې په ډیره مینه کمپوز کړل د ښاغلي مبارز ځاپي، عریز سرشار او نصیر ستوری، چې ددې کتاب د شعرونو لیک دود ئې سم کړی دی او د عبدالبصیر بیدار څخه چې د کتاب په چاپولو کې ئې زیار وېستلی دی، ډیر مننه کوم.

د غلام ولي اپریدي نه ډېره خوښنه ، چې ددې کتاب د چاپ لگښت په غاړه اخیستی دی.

## په درنښت

## ډاکتر کبیر ستوری



**کبیر ستوری** د ساینس پوهنو ډکتور ( Dr.rer.Nat ) ډیپلوم ساپوه ( Diplom Psychology ) په هلې پښتون، په تیر میرداد خېل، چې د پښتنو د یوسفزو د پرګنې پورې اړه لري. ستوری د لعل محمد خان زوی او د برې پښتونخوا د کونړ د تنر په کلي کې په ۱۷/۱/۱۳۲۱ هـ ل کال (۶/۴/۱۹۴۲ع) زېږېدلی دی.

ده خپله لومړنۍ زده کړه د خاص کونړ په لومړني ښوونځي او په کابل کې د رحمان بابا په لیسه کې او خپله لوړه زده کړه د جرمني د فرانکفورت، کولن او د ماربورګ په پوهنتونونو کې د ساپوهنې ( Psychology ) په څانګه کې، چې فلسفه ( Philosophy ) سیاسي پوهنه ( Pol.Science ) او ټولنپوهنه (Sociology ) ورسره مل وه، سرته رسولې ده.

ستوری د نړۍ د ساپوهانو په ډله کې ولاړ دی او د ۱۹۷۵ع کال راهیسې د کړنې د ساپوهنې د نړیوالې ټولنې ( International Association of Applied Psychology ) غړی دی. ستوری د پښتون سوشل ډیموکراتیک پارټۍ (P.S.D.P ) مشر او ددې پارټۍ د بنسټ ایښودونکو مخکښانو څخه دی.

او د شاعرۍ په نړۍ کې تر ټولو زیات د پښتو د ادب د پلار اجمل خټک نه یې الهام اخیستلی دی. د پښتنو د یووالي، خپلواکۍ او سوکالۍ دپاره ده ته د باچا خان نظریو ژوند وربښلی دی.